يَا مُحَمَّدُ اَنْ لَّا يُصَلِّيَ عَلَيْكَ اَحَدٌ مِّنْ اُمَّتِكَ

اے محمده! په دے چه درود نه وائي په تا څوک له اُمته ستا نه

اِلَّا صَلَّيْتُ عَلَيْهِ عَشْرًا وَّ لَا يُسَلِّمُ اَحَدٌ مِّنْ اُمَّتِكَ

مگر درود وايم زه په هغه لس ځله او نه سلام اچوي څوک له اُمت ستا نه

اِلَّا سَلَّمْتُ عَلَيْهِ عَشْرًا هٗ وَ قَالَ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

مگر درود وايم زه په هغه لس واره او فرمايلي دي نبي صلى الله عليه

وَسَلَّمَ اِنَّ اَوْلَى النَّاسِ بِيْ اَكْثَرُهُمْ عَلَيَّ صَلٰوةً

وسلم بيشکه زيات نزدے خلقو مانه دے به زيات درود لېږونکي وي په ما

وَ قَالَ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ صَلّٰى عَلَيَّ

او فرمايلي دي نبي صلى الله عليه وسلم څوک چه درود اووائي په ما

له قوله عشرًا: د حضرت محمد صلى الله عليه وسلم په برکت سره په نحوي د من جاء بالحسنة فله عشر امثالها له بارګاه ايزدي نه د يو درود په عوض لس درود يعني رحمتونه نجيل بنده نازلوي او له دے نه دا لازمه نه ده چه د الله تعالى نه صرف يو رحمة په محمد نازلېږي او په درود ويونکي لس ځکه چه الله سره د ټولو ملائکو خپل درود په حضرت لېږي. او که فرض کړو چه الله تعالى يو درود لېږي. مگر هغه په شرافت کرامة عظمت کښې له کرورو درودونو نه بهتر وي چه ملغلره چه بيش قيمته وي او چرته هغه ملغلرو چه د خس کنجکوي ۱۲ صلوٰة ناصري. له قوله عشرًا: دا روايت کړيدے ابو عيسى ترمذي او ابن حبان هم له عبد الله بن مسعود نه او دا عبد الله بن مسعود يو خاص خادم وو د رسول الله او هجرت ئے کړے وو سره نورو د مهاجرينو حبشې ته او عمر ئے پنځه شپيته کاله وو په ۳۲ سنه کښې په مدينه منوره کښې وفات شوے وو ۱۲ نور محمد. ۳ له قوله اکثروا: د اکثرو نه مراد اکثريت دے او د اکثريت کمتره مرتبه درے سوه واره دي ۱۲ قرة القلوب. له قوله وقال النبي صلى الله عليه وسلم: روايت کړيدے د دے حديث طبراني په اوسط کښې او امام احمد او ابونعيم هم ۱۲ ناصري.

صَلَّتْ عَلَيْهِ الْمَلَائِكَةُ مَا دَامَ يُصَلِّيْ عَلَيَّ فَلْيُقِلَّ

درود به وائي په هغه پرښتې ترڅو چه دے درود وائي په ما نو خوښه دے څوک دې

عِنْدَ ذٰلِكَ أَوْ لِيُكْثِرْ وَقَالَ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

چه لږ درود وائي يا ډير او فرمائيلي دي رسول كريم صلى الله عليه وسلم

بِحَسْبِ الْمَرْءِ مِنَ الْبُخْلِ[1] أَنْ أُذْكَرَ عِنْدَهُ وَلَا يُصَلِّيَ

بس دے سړي لره دا بخل چه زه ذکر کړے شم د ده مخه او درود اونه وائي

عَلَيَّ وَقَالَ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَكْثِرُوا[2] الصَّلٰوةَ[3]

په ما او فرمائيلي دي نبي صلى الله عليه وسلم زيات لولئ درود

عَلَيَّ يَوْمَ الْجُمُعَةِ وَقَالَ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

په ما په ورځ د جمعې او فرمائيلي دي نبي صلى الله عليه وسلم

مَنْ صَلّٰى عَلَيَّ مِنْ أُمَّتِيْ مَرَّةً وَاحِدَةً كُتِبَتْ

څوک چه درود ولولي په ما د امت زما نه يو ځل نو او به ليکلے شي

۱ قوله من البخل ، يعني هغه سخت کنجوس دے چه مال سره د حاجتمند لګوي بلکه سخت بخيل هغه دے چه زه هغه مخه ياد کړے شم او هغه له غفلت نه په ما درود او نه لولي او ادا د شکر د هغه نعمت چه دے ته زما په ذريعه رسيدلے دے اونکړي ۱۲ مرقات الحسنات . ۲ قوله اکثروا الصلوٰة ، روايت کړے دے دغه حديث ابن ماجه د ابي الدرداءؓ او په بعضو نسخو کښې اکثروا من الصلوٰة دے په زيات د من سره ۱۲ مناسي . ۳ قوله يوم الجمعة د جمعې ورځ د ډيرې لويې ده په دے ورځ الله تعالىٰ آدم عليه السلام پيدا کړے وو او هم په دے ورځ روح قبض شوے وو او د جمعې په ورځ کښې يو ساعت دے چه دعا پکښې قبليږي او فرښتې هم په دے ورځ نازليږي او بے د شک واسطے د رسول اللهؐ په حال د امت خبريږي او دے ورځے عيد المؤمنين دے او سيد الايام دے روايت کړے بيهقي په شعب الايمان کښې چه فرمائيلي دي رسول اللهؐ چه څوک د جمعې په ورځ او په شپه په کثرت سره درود ولولي نو زه به د هغه ګواه يم او شفيع يم په ورځ د قيامت ۱۲

لَهُ عَشْرُ حَسَنَاتٍ وَمُحِيَتْ عَنْهُ عَشْرُ سَيِّئَاتٍ وَقَالَ

دهغه باره لس نیکئ او محوه (عفوه) کړیشي هغه ته لس بدئ او فرمایلي دي

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ قَالَ حِيْنَ يَسْمَعُ الْأَذَانَ

نبي صلی الله علیه وسلم څوک چه ووائي په هغه وخت چه واوري اذان

وَالْإِقَامَةَ اَللّٰهُمَّ رَبَّ هٰذِهِ الدَّعْوَةِ النَّافِعَةِ وَ

او اقامت یا الله خاوند د دے بلنے نفعمنده او

الصَّلٰوةِ الْقَائِمَةِ اٰتِ مُحَمَّدَنِ الْوَسِيْلَةَ وَالْفَضِيْلَةَ وَ

دائمه قائمیدونکي ورکړه محمد ته وسیله او فضیلت او

ابْعَثْهُ مَقَامًا مَّحْمُوْدَ نِ الَّذِيْ وَعَدْتَّهٗ حَلَّتْ لَهٗ

ولیږه هغه مقام محمود ته هغه چه تا ئے وعده کړیده لازم به شي هغه لره

له قوله عشراه . یعني او به بخښلے شي هغه ته لس گناهونه او غم نوره مواخذه به پرے نه وي ۱۲ روایت کړیدے دے حدیث نسائي په في الیوم واللیلة کښې له عمرو بن دینارنه او زیاتے کړیدے په دیکښې و مخلصا من قلبه یعني د دے دعا ولولي د زړه په اخلاص سره په رسول کریم ۱۲ فاسی . له قوله یسمع الاذان والاقامة . حدیث شریف کښې راغلي دي چه هرکله نازل شي یه بلا غم نو هغه لره پکار دي چه جواب ورکړي مؤذن لره او طریقه ئے په مشکوٰة کښې ذکر ده . ځکه چه په دغه وخت د اسمان دروازے پرانستے شي او دعا قبلیږي ۱۲ حیٰوة الحیوان . سه قوله الوسیلة . هغه توسل دے یعني حضرت به په جنت کښې د الله سره وسیږي . ځکه چه وزیر د بادشاه سره وسیږي نه ملاویږي نه مرتبه پاته او نه غم رنځ مگر به وسیله د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم ۱۲ سیرت محمدیه . ئوله دے نه د اثابته شوه چه وسیله یو اعلیٰ درجه ده په جنت کښې ۱۲ مواهب لدنیه . روایت کړیدے ابن ابي حاتم له حضرت علي رض نه چه جنت کښې دوه ملغلرے دي یو سپینه نوم ئے وسیله ملیاره د حضرت ۲ او د اولاد د هغه یعني اهل بیت د هغه او بله زیړه ملیاره د ابراهیم او اهل بیت د هغه ۱۲ زرقاني . سه قوله مقاما محمود . دا یو مرتبه د تمامو مخلوقاتو او احتمال لري چه دا یو بله درجه وي سوا د وسیلے نه او احتمال لري چه دا عطف تفسیري لپاره د وسیلے ۱۲ زرقاني . مقام محمود یو مقام دے مرجعه د تولو مقاماتو او مظهر د تمامو اسماء الٰهیه دے او هغه دے په حضرت ۲ پورے او د دے وانا د شفاعت به د لته نه پرانستے کیږي ۱۲ اصول له ۹ نه قوله الله ۹ عسٰی ان یبعثک ربک مقاما محمودا

شَفَاعَتِیْ یَوْمَ الْقِیٰمَةِ وَقَالَ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ

شفاعة زما په ورځ د قیامة او فرمایلي دي نبي صلی الله علیه وسلم

مَنْ صَلّٰی عَلَیَّ فِیْ کِتَابٍ لَمْ تَزَلِ الْمَلٰٓئِکَةُ

څوک چه درود ولولي په ما په کتاب کښې همیشه به ملائک

تُصَلِّیْ عَلَیْهِ مَا دَامَ اِسْمِیْ فِیْ ذٰلِكَ الْکِتَابِ وَقَالَ

دعا ورلولي په هغه ترڅو چه وي نوم زما په دغه کتاب کښې او فرمایلي دي

اَبُوْسُلَیْمَانَ الدَّارَانِیُّ مَنْ اَرَادَ اَنْ یَّسْئَلَ اللّٰهَ

ابوسلیمان داراني څوک چه اراده لري چه سوال وکړي له الله تعالی نه

حَاجَتَهٗ فَلْیُکْثِرْ بِالصَّلٰوةِ عَلَی النَّبِیِّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ

د حاجت خپل نو دیر دې وائي هغه درود په نبي صلی الله علیه

وَسَلَّمَ ثُمَّ یَسْئَلِ اللّٰهَ حَاجَتَهٗ وَلْیَخْتِمْ بِالصَّلٰوةِ

وسلم بیا دې غواړي له الله تعالی نه حاجت خپل او ختم دې کړي سوال خپل په درود ویلو

عَلَی النَّبِیِّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ فَاِنَّ اللّٰهَ یَقْبَلُ الصَّلٰوتَیْنِ

په نبي صلی الله علیه وسلم نو په تحقیق الله قبلوي دا دواړه درود

وَهُوَ اَکْرَمُ مِنْ اَنْ یَّدَعَ مَا بَیْنَهُمَا وَرُوِیَ عَنْهُ

او هغه کریم دے له دے نه چه پریږدي هغه دعا چه ده په مینځ د دواړو کښې او روایت شویدے له ده نه

له قوله ابوسلیمان الدارانی :۔ د داران اوسید ونکے وو.
او داران یو کلے دے په شام کښې په قرب وجوار د دمشق
ښهر کښې په ۲۰۵ھ کښې وفات شوے دے ۱۲.

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهٗ قَالَ مَنْ صَلّٰى عَلَيَّ

صلی الله علیه وسلم چه دوی فرمایلی دی چه چا درود اووائی په ما

يَوْمَ الْجُمُعَةِ[1] مِائَةَ مَرَّةٍ غُفِرَتْ لَهٗ خَطِيْئَةُ ثَمَانِيْنَ

په ورځ د جمعې سل ځله نو بخښلی به شی هغه ته د اتیا کالو ګناهونه

سَنَةً وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ[2] رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ اَنَّ رَسُوْلَ

او روایت شوی دی له ابی هریره رضی الله عنه نه چه په تحقیق رسول

اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لِلْمُصَلِّيْ عَلَيَّ نُوْرٌ

د الله (محمد) صلی الله علیه وسلم فرمایلی دی وی به درود وئیونکی لره رڼا

عَلَى الصِّرَاطِ وَمَنْ كَانَ عَلَى الصِّرَاطِ مِنْ اَهْلِ النُّوْرِ

په پل صراط او څوک چه وی په پل صراط له خلقو د رڼا نه

[1] قوله یوم الجمعة: په خبر کښی دی چه چا درود ولوستو په ماباندې د ورځې د جمعې اتیا ځله نو الله تعالی به وبخښی هغه ته ګناه د د اتیا کال حیا او وئیل یا رسول الله څرنګه درود به لولو په تاباندې نو هغه ورته وفرمایل چه لولئ اللهم صل علی محمد عبدك ونبيك ورسولك النبي الامي او دا یو دانه دے ۱۲ قرة العیون او په غنیة الطالبین کښی له حضرت انس نه هم دا سې روایت دے او هم دا رنګې په جامع الصغیر کښی دے

[2] قوله وعن ابي هريرة: یعنی روایت دے له ابی هریره نه چه فرمائیلی رسول کریم صلی الله علیه وسلم څوک چه موږ د مازیګر وکړی او لا د ځپل ځائے نه پورته شوے نه وی او دا درود ولولی اللهم صل علی محمدن النبي الامي وعلى اله وسلم تسليما. نو د اتیاؤ کالو ګناهونه به ورته او بخښلے شی ۱۲ فاسئ. نوم د ابی هریره په زمانه د جاهلیت کښی عبدالشمس وو پس له مسلمانیدو حضرت صلی الله علیه وسلم ئې نوم عبد الرحمن کینبود او کنیت ئې ابوهریره دے

ځکه چه دوی به پیشوګان ساتل د شپې ورورونو د نبي نه حدیثونو روایت

ترینه شوی دے. او عمر ئې اته اویا کاله وو. په ۵۸ کښی وفات

شوی دے. دا حدیث دیلمی د ابوهریره نه نقل کړی دے ۱۲

لَمْ يَكُنْ مِنْ اَهْلِ النَّارِ وَقَالَ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

نه به وي هغه له خلقو داورنه او فرمايلي دي نبي صلے الله عليه وسلم

مَنْ نَسِيَ الصَّلٰوةَ عَلَيَّ فَقَدْ اَخْطَأَ طَرِيْقَ الْجَنَّةِ وَ

څوک چه هير کړي درود په ما نو به تحقيق خطا کړه لاره د جنة او

اِنَّمَا اَرَادَ بِالنِّسْيَانِ التَّرْكَ وَاِذَا كَانَ التَّارِكُ

بيشکه مراد کړيدے په هيرولو پريخودل او چه شو پريخودونکے

يُخْطِئُ طَرِيْقَ الْجَنَّةِ كَانَ الْمُصَلِّيْ عَلَيْهِ سَالِكًا اِلَى

خطا کونکے د لارې د جنة نو وي به درود ويونکے په هغه تلونکے

الْجَنَّةِ وَفِيْ رِوَايَةِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ عَوْفٍ رَضِيَ

جنة ته او په روايت د عبد الرحمٰن ځوئ د عوف کښې راضي ريشی

اللّٰهُ تَعَالٰى عَنْهُ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

الله تعالے د هغه نه چه فرمايلي دي رسول الله صلے الله عليه وسلم

جَاءَنِيْ جِبْرِيْلُ عَلَيْهِ السَّلَامُ فَقَالَ يَا مُحَمَّدُ

چه راغلے وو ما ته جبريل عليه السلام نو وے ويل چه اے محمد

له قوله لم يكن من اهل النار - ځکه نور د ايمان چه دے وشرتي اور د دوزخ او يخ کوي لمغلره نور دوزخ زياد کوي چه دے مسلمانه زر تيرېشه اولے شه ځکه چه رنړا ستا مرکوي مالره ١٢ مزرع الحسنات . ٢ه قوله التارك - ابن مسعود وئيلي دي چه او ريدلي دي ماله رسول کريم صلے الله عليه وسلم نه چه د قيامت په ورځ به حکم وشي يو ښولی نه د داخليدو جنة ته نو هغوی به لارې خطا کړي د جنت او حيران به شي نو صحابو عرض وکړه يا رسول الله هغه خلق به څوک وي حضرت وفرمايل چه دا هغه خلق دي چه دد وي په مجلس کښې زما نوم به ذکر کړے شو نو دوي به درود نه لوستلو په ما بلند او بيا حضرت وفرمايل چه من نسي الصلوٰة الخ ١٢ صلوٰة نادري

لَا يُصَلِّىْ عَلَيْكَ اَحَدٌ مِّنْ اُمَّتِكَ اِلَّا صَلّٰى

درود نه وائی | به تا | څوک له اُمته ستا | مګر درود وائی

عَلَيْهِ سَبْعُوْنَ اَلْفَ مَلَكٍ وَمَنْ صَلَّتْ عَلَيْهِ

به هغه | اویا زره | فرښتې | او څوک چه درود اووائی | به هغه

الْمَلٰٓئِكَةُ كَانَ مِنْ اَهْلِ الْجَنَّةِ وَقَالَ صَلَّى اللّٰهُ

فرښتې | وي به هغه | له خلقو د جنت نه | او فرمائيلي دي نبي صلی الله

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَكْثَرُكُمْ عَلَيَّ صَلٰوةً اَكْثَرُكُمْ

علیه وسلم | زیات ستاسو | په ما | په جهت د درود نه زیات ستاسو دے

له قوله لا یصلی اه: مګر ودی حدیث لوستونکی له پوره کیدل لپاره د تعظیم دپاره مکه چه بده نزولے د رسول الله صلی الله علیه وسلم دے او مکو دے احترام. او سلفو صالحینو نه قطع کول حدیث د حضرت او نه به ئے حرکت کولو ۱۲ که به رسیده ضرر بدن د هغوی ته پوره دهٔ تالره به نمونه دو یکښې واقعه د امام مالکؒ چه یو ځل ده حدیث شریف لوستلو او لړم اوولس ځله وچیچه لیکن ده هغه حرکت ونکړو او هغه تکلیف ئے برداشت کړو ۱۲ مواهب لدنیه. له قوله سبعون اه: اود اپه اعتبار د درود او د تفاوت د هغه په اخلاص او په شوق او په تعظیم کښې او په بل حدیث کښې له عبد الرحمن بن عوف نه روایت دے چه فرمائیلي دي رسول اللهؐ چه زما ته راغلو جبرئیلؑ چه فرمائي رب ستا چه څوک درود اووائي به تا نو زهٔ درود وایم په هغه او چه څوک سلام لیږي په تا نو زهٔ سلام لیږم په هغه نو ما د شکر سجده وکړه ۱۲ قوله الملائکة: آیا داخل دی فرښتې په عدد د صحابهؓ کښې او که نه. دا محل د نظر دے. ویلې دي چه داموقوفه ده په دے خبره چه آیا حضرتؐ مبعوث دے فرښتو ته او که نه دے. غوره کړیده شیخ تقی الدین سبکیؒ چه حضرتؐ مبعوث وو فرښتو ته هم ۱۲ اصابه. ۴ له قوله کان: ځکه چه فرښتې اهل دي د رحمت د الله تعالی او پاکے دي له ګناهونو نو الله تعالی به پخپل رحمت او نیکرو کول په ما غواړي نو جاری کړي به په ژبه د فرښتو د ما د رحمت د هغه دپاره نو قبلوي الله دعا د دوی په حق د هغه کښې او بخښي ګناه د هغه ته ۱۲ فاسئ. ۵ه قوله قال صلی الله علیه وسلم: فرمائیلي دي حضرتؐ چه ډیر قسم خلق به زما نزدې وي په ورځ د قیامت کښې له موږ وبلادهٔ او بل پرېښوئے د سنت زما بل هغه کس هغه څوک او درود اووائي لولي به ما بلاذیه روح البیان

أَزْوَاجًا فِى الْجَنَّةِ وَرُوِىَ عَنْهُ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

له جهته د ښځو نه په جنت کښې او روایت شوی دے له نبي صلی الله علیه

وَسَلَّمَ اَنَّهُ قَالَ مَنْ صَلّٰى عَلَىَّ صَلٰوةً تَعْظِيْمًا

وسلم نه چه ده فرمائیلي دي څوک چه درود اووائي په ما درود له وجهې د تعظیم

لِحَقِّىْ خَلَقَ اللّٰهُ عَزَّ وَجَلَّ مِنْ ذٰلِكَ الْقَوْلِ مَلَكًا

د حق زما پیدا به کړي الله عز و جل له دغه وینا نه فرښته

لَهُ جَنَاحٌ بِالْمَشْرِقِ وَالْاٰخَرُ بِالْمَغْرِبِ وَرِجْلَاهُ

چه د هغې څانګ به په مشرق وي او بل به په مغرب وي او دواړه خپې ئې

مَقْرُوْرَتَانِ فِى الْاَرْضِ السَّابِعَةِ السُّفْلٰى وَعُنُقُهُ

جوښتې وي په زمکه اوومه کښې چه ښکته او ګردن د هغې

مُلْتَوِيَةٌ تَحْتَ الْعَرْشِ يَقُوْلُ اللّٰهُ عَزَّ وَجَلَّ لَهُ

ګلید لے دے لاندے طرف د عرش سره فرمائي الله عز وجل هغه ته

صَلِّ عَلٰى عَبْدِىْ كَمَا صَلّٰى عَلٰى نَبِيِّىْ فَهُوَ يُصَلِّىْ

چه درود ووایه په بنده زما څنګه چه هغه درود وئیلے دے په پیغمبر زما نو هغه فرښته درود وائي

له قوله ازواجا. دا حدیث شریف په دے دلالت کوي چه د هر جنتي به ډیرے بیبیانې وي، او دا د بیبیانو به متفاوت وي په اعتبار د قلت او کثرت د درود په حضرت، ښځې به په جنت کښې د ښاپیرو سوکالو وي. او ناسته به د درے دیرشو کالو وي. د حور معنے ده ښځه سوره رنګه سره د سپین رنګ چه ښائسته وي د جنت حورې که څه کوته په نور تیاره شپه کښې رابنکاره کړي نو دُنیا به ټوله روښانه او رڼا شي. تیاره به پاتے نه شي ۱۲ بحر مواج.

عَلَيْهِ اِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ وَرُوِيَ عَنْهُ صَلَّى اللّٰهُ

په هغه تر ورځې دقيامت پورې اوروايت شويدې له نبي صلى الله

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهُ قَالَ لَيَرِدَنَّ عَلَيَّ الْحَوْضَ يَوْمَ

عليه وسلم نه چه ده فرمائيلي دي خامخا به راځي ماته حوض ته په ورځ

الْقِيٰمَةِ اَقْوَامٌ مَّآ اَعْرِفُهُمْ اِلَّا بِكَثْرَةِ الصَّلٰوةِ

دقيامت داسې قومونه چه زه به ئې نه پيژنم مګر په ډير درود ويلو

عَلَيَّ وَرُوِيَ عَنْهُ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهُ قَالَ

په ما باندې او روايت شويدې له نبي صلى الله عليه وسلم نه چه ده فرمائيلي دي

مَنْ صَلّٰى عَلَيَّ مَرَّةً وَّاحِدَةً صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

چه څوک درود اووائي په ما يو ځل نو درود به اووائي الله په هغه

عَشْرَ مَرَّاتٍ وَمَنْ صَلّٰى عَلَيَّ عَشْرَ مَرَّاتٍ صَلَّى اللّٰهُ

لس واره او څوک چه درود اووائي په ما لس واره نو درود به اووائي

عَلَيْهِ مِائَةَ مَرَّةٍ وَمَنْ صَلّٰى عَلَيَّ مِائَةَ مَرَّةٍ صَلَّى اللّٰهُ

الله په هغه سل واره او څوک چه درود اووائي په ما سل واره نو درود به اووائي الله

ـه قوله على الحوض . روايت دے له انس رضه نه چه فرمائيلي دي حضرت ؐ چه زما حوض څلور رکنه دي اولنے رکن د ابوبكر رضه په لاس کښې به وي دويم د عمر فاروق رضه په لاس کښې به وي دريم د عثمان ذي النورين رضه په لاس کښې به وي او څلورم د علي مرتضى رضه په لاس کښې به وي . نو کوم سړے چه د ابوبكر رضه دوست وي او د عمر رضه دشمن وي نو ابوبكر رضه به ورته اوبه نه ورکوي . او څوک چه د علي دوست وي او د عثمان رضه دشمن وي نو علي رضه به ورته اوبه نه ورکوي . فرمائيلي دي علي رضه چه کوم سړے د ابوبكر رضه دشمن وي نو زه به هر ګز هغه ته د حوض کوثر اوبه ورنکړم ۱۲

عَلَيْهِ أَلْفَ مَرَّةٍ وَمَنْ صَلّٰى عَلَيَّ أَلْفَ مَرَّةٍ حَرَّمَ[1]

په هغه زر وارې او څوک چې درود او وائي په ما باندې زر وارې نو حرام به کړي

اللّٰهُ جَسَدَهٗ عَلَى النَّارِ وَثَبَّتَهٗ بِالْقَوْلِ الثَّابِتِ

الله جثه دهغه په اور باندې (وثابت به ولري) دهغه به هغه قول ثابت

فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا وَفِي الْاٰخِرَةِ عِنْدَ الْمَسْئَلَةِ وَاَدْخَلَهُ

په ژوند د دنيا او په آخرت کښي په نزد د تپوس په قبر کښي او داخل به کړي هغه

الْجَنَّةَ وَجَاءَتْ صَلٰوتُهٗ عَلَيَّ نُوْرًا لَهٗ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ

جنت ته او رابه شي درود ده په ما رڼا درود خوان لره په ورځ د قيامت

عَلَى الصِّرَاطِ مَسِيْرَةَ خَمْسِمِائَةِ عَامٍ[2] وَّاَعْطَاهُ اللّٰهُ

په پل صراط په مقدار د سفر د پنځو سوو کالو او ورکړي به هغه ته الله تعالیٰ

[1] قوله حرم ۔ يعنې اور د دوزخ به پرې حرام وي مطلقًا په اعتبار د ظاهر د دے حديث شريف گناه کبيره او صغيره دواړه ورته معاف کيږي. او دير حديثونه د دے مقتضي دي چې په اعمالِ صالحه سره صغائر او کبائر دواړه معاف کيږي. د علماؤ په دېکښې اختلاف دے. بعضې وائي چې مراد د غسې احاديثو صغائر دي او دغه حديثونه مقيد دي په قيد ما اجتنب الکبائر سره. ويلي دي شيخ عبد الله بن مرزوق چې اعتقاد د اهل سنت والجماعت دا دے چې په اعمالِ صالحه صغائر معاف کيدے شي. او کبائر په توبه سره مگر په فضل کولو د الله سره. دا نص دے د تمام و اماما نو د علم کلام او ويلي دي يو قوم چې جائز دي چې معاف کړي الله په اعمالِ صالحه سره صغائر او کبائر دواړه او په دے باب کښې روايات کثيره وارد دي ۱۲ نور محمد عفي عنه

[2] قوله عام ۔ مراد لدے کلونه کلونه د دنيا دي. په بعضو حديثونو کښې دي چې مسافة د پل صراط درے زره کاله دے. زر کاله د ختو زر کاله د برابرا و زر کاله د کوزيدو او بل روايت کښې پنځلس زره کاله دے پنځه زره کاله د ختو او پنځه زره کاله د برابر او پنځه زره کاله د کوزيدو او هغه پل صراط له ويښته نه باريک دے او توره نه تيره دے. او په شا د جهنم پروت دے. او تيريه نه شي په دے پل مگر هغه څوک چې د الله تعالیٰ له ويره نه نرے او چ شوے وي ۱۲

يَبْقٰى شَيْءٌ اِلَّا وَصَلّٰى عَلَيْهِ وَيَخْلُقُ مِنْ تِلْكَ الصَّلٰوةِ

پاتے کیږی نه شیز مګر حال داوی چه هغه درود وائی په دعا ویدا کوی الله له د غه درود نه

طَائِرًا لَهٗ سَبْعُوْنَ اَلْفَ جَنَاحٍ فِيْ كُلِّ جَنَاحٍ

مارغه چه د هغه او یا زره وزرے وی په هر وزر کښی

سَبْعُوْنَ اَلْفَ رِيْشَةٍ فِيْ كُلِّ رِيْشَةٍ سَبْعُوْنَ اَلْفَ

او یا زره بنړه وی په هر بنړه کښی او یا زره

رَأْسٍ فِيْ كُلِّ رَأْسٍ سَبْعُوْنَ اَلْفَ فَمٍ فِيْ كُلِّ

سرونه وی په هر سر کښی او یا زره خولے وی په هر

فَمٍ سَبْعُوْنَ اَلْفَ لِسَانٍ فِيْ كُلِّ لِسَانٍ يُسَبِّحُ اللّٰهَ

خوله کښی او یا زره ژبے وی په هره ژبه تسبیح وائی هغه الله

تَعَالٰى بِسَبْعِيْنَ اَلْفَ لُغَاتٍ وَيَكْتُبُ اللّٰهُ لَهٗ ثَوَابَ

تعالٰی لره په او یا زره لغاتو سره او لیکی الله هغه دپاره ثواب

ذٰلِكَ كُلِّهٖ وَعَنْ عَلِيِّ بْنِ اَبِيْ طَالِبٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ

د دغه ټول او روایت دے له حضرت علی بن ابی طالب راضی وشی الله د هغه

لے قوله عن علی رضی الله عنه:- پوهه شه چه حضرت علی رض د رسول کریم صلی الله علیه وسلم د چیل تره ځوئی او د فاطمه رض لوئ داسد چه د حضرت علی رض مور وه د رسول الله صلی الله علیه وسلم ترور وه د جمعے په ورځ په دیارلسم د رجب د واقعه فیل په دیرشم کال خانه کعبه کښی دننه پیدا شوے وو د پنځو کالو په عمر کښی د رسول کریم صلعم سره ملګرے شویدے د هجرت په دویم کال د ده عقد د نکاح د حضرت فاطمه رض سره شویدے په اوله ورځ د محرم سنه ۳۶ھ په مسند د خلافت ناست څو میاشتے د پاسه څلور کاله خلافت ئے چلولے وو په ۲۰ رمضان سنه ۴۰ھ له زخم د توره د عبدالرحمان بن ملجم نه درجے د شهادت رسیدلے وو.

قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ صَلّٰى

ده ویلی دی فرمایلی دی رسول الله صلی الله علیه وسلم څوک چه درود

عَلَيَّ يَوْمَ الْجُمُعَةِ مِائَةَ مَرَّةٍ جَاءَ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ وَ

وُلولی په ما په ورځ د جمعې سل واره رابه شی په ورځ د قیامت او

مَعَهٗ نُوْرٌ لَوْ قُسِمَ ذٰلِكَ النُّوْرُ بَيْنَ الْخَلْقِ كُلِّهِمْ

وی به سره د هغه نور که تقسیم د هغه نور په مینځ د مخلوق ټول کښی

لَوَسِعَهُمْ ذُكِرَ فِيْ بَعْضِ الْاَخْبَارِ مَكْتُوْبٌ عَلٰى

نو ګوبه رسیږی دوی ته ذکر شوی دی په بعضو خبرونو چه لیکلی شوی دی په

سَاقِ الْعَرْشِ مَنِ اشْتَاقَ اِلٰى رَحْمَتِهٖ وَمَنْ

پنډۍ د عرش چه څوک شوق لری ما سره عم به ګړی په هغه او څوک چه

(بقیه د تیرمخ) قول عمر ځ دی شپیته کاله وُو او وړوکوالی نه د حضرت په تربیت وُرسیدو او هرونت به د رسول الله صلی الله علیه وسلم حضور مبارک ته راتللو او ابن عباس چه رئیس المفسرین وُو د حضرت علی شاګرد وُو. او حضرت علی په فقه او فصاحت کښی ډیر لوی درجه لرله. او علم نحو هم له ده نه ظاهر شویدی او اسم کنیه د ده ابو تراب دے. او وجه د دی دا ده چه یوه ورځ رسول کریم د حضرت فاطمې کورته تشریف یوړو. نو علی ئې بیا نه موند دبی بی فاطمې نه ئې تپوس وُکړو هغې ورته اُویل چه ما نه خفه شویدی چرته بهر تللے دے نو سړی ئې ورپسے وُلیږلو چه جُومات کښی ئې اوده بیا موندو. نو رسول کریم ورپسے جُومات ته تشریف یوړو چه په نهکر غال اوده وُو. او شا ئې له خاورو نه ډکه شوے وه نو رسول کریم له ډیر محبت نه ده د شانه خاورې څنډلے او ورته ئې وُفرمایل قُم یا ابو تراب قُم یا ابا تراب پورته شه اے په خاورو کښی اوده شویه ۱۲ نور محمد. ـ

(ددے مخ حاشیه) له قوله ساق العرش: د عرش دری سوه شپیته پښې دی. او پلنوالے د هرے پښے په مقدار د اویا زره پلنوالی د زمکے دے او د هرے دوه پښو ترمینځه اویا زره میلا ندی او ډیر هیدان کښی اویا زره عالم دے او هر عالم لکه جن او انس ۱۲

سَأَلَنِيْ أَعْطَيْتُهٗ وَمَنْ تَقَرَّبَ إِلَيَّ بِالصَّلٰوةِ عَلٰى

سوال وُکړو زمانه ورته کرم هغه ته او څوك چه ځان نزدے کوی ماته په دُرودو ویلو په

مُحَمَّدٍ غَفَرْتُ لَهٗ ذُنُوْبَهٗ وَلَوْ كَانَتْ مِثْلَ زَبَدِ

محمدؐ اوبه بخښم هغه ته ګناهونه دهغه اګرکه وی په مثل د ځګ

الْبَحْرِ وَرُوِيَ عَنْ بَعْضِ الصَّحَابَةِ رِضْوَانُ اللهِ

د دریاب او روایة شویدے له بعضی صحابونه راضی دِی الله

عَلَيْهِمْ أَجْمَعِيْنَ أَنَّهٗ قَالَ مَا مِنْ مَجْلِسٍ يُصَلّٰى فِيْهِ

له هغه ټولو نه چه حضرت ؓ فرمائیلی دی چه نشته هم مجلس چه دُرود لوستے شی پکښی

عَلٰى مُحَمَّدٍ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَّا قَامَتْ مِنْهُ رَائِحَةٌ

په محمد صلے الله علیه وسلم مګر پورته کیږی له هغه بُوئے

له قوله علی محمدؐ - هرکله چه آدمؑ له جنت نه د وتلو اراده وُکړه نو ئیکلی ئے وُلیدل په ساق د عرش او هر ځائے د جنت اسم د محمدؐ اسره د اسم د الله تعالیٰ. نو عرض ئے وُکړو چه یاربه دا محمدؐ څوك دے الله پاك وُفرمائیل چه دا ستا ځوئ دے که دے نه وے نو ته به نه وے پیدا کړے نو آدمؑ عرض وُکړو چه یارب په حرمة د دے ولد رحم وُکړه په دے والد باندے نو آواز راغے چه اے آدمؑ قبوله مِ کړه دُعا ستا او که ستا سفارش غوښتے وے له مانه په حرمة د محمدؐ په حق د خلقو د زمکے او د آسمان کښی نو ما به قبول کړے وُو ۱۲ له قوله رائحة طیبة روایة دے له بعضو صحابو ؓ نه چه نشته هم ځائے چه ذکر شی پکښی محمدؐ یا دُرود شریف وُلوستے شی په هغه په دغه ځائے کښی مګر خیژی له هغه ځائے نه خوشبوئی حتی چه لاړ او وه آسمانونو نه پورے شی او عرش ته وُرسیږی او د دے درود خوشبوئی محسوس کړی نو دغه به خوند کښی به پاتے شی د دنیا له کاروبار نه او نور کوم مخلوق او فرښتو ته چه رسیږی دا خوشبوئی نو طلب د مغفرت کوی لپاره د خلقو د هغه ځائے د ......... او لیکلے شی د پاره د خلقو د هغه مجلس نیکیانے په شمار د ټول مخلوق او بلند کیدے شی مرتبے د هغوی په دغه مجلس کښی یو سړے وی او لکه وی ثواب هغه ټولو ته برابر رسیږی.

نور محمد عفی عنه.

طَيِّبَةٌ حَتّٰى تَبْلُغَ عَنَانَ السَّمَآءِ فَتَقُوْلُ الْمَلٰۤئِكَةُ هٰذَا

ښه ان تر دې چه رسیږي طرف د آسمان ته نو وائي فرښتې دا

مَجْلِسٌ صُلِّيَ فِيْهِ عَلٰى مُحَمَّدٍ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

یو مجلس دے چه درود لوستلے شوېدے پکښې په محمد صلے الله علیه وسلم

ذُكِرَ فِيْ بَعْضِ الْاَخْبَارِ اَنَّ الْعَبْدَ الْمُؤْمِنَ اَوِ الْاَمَةَ

ذکر شوېدې په بعض خبرونو کښې په تحقیق باندې بنده مؤمن یا وینځه

الْمُؤْمِنَةَ اِذَا بَدَءَ بِالصَّلٰوةِ عَلٰى مُحَمَّدٍ صَلَّى اللّٰهُ

مومنه (ښځه ایمانداره) کوم وخت چه شروع وُکړي په درود ویلو په محمد صلے الله

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فُتِحَتْ لَهٗ اَبْوَابُ السَّمَآءِ وَ

علیه وسلم نو پرانستلې شي هغه ته دروازې د آسمان او

السُّرَادِقَاتُ حَتّٰى اِلَى الْعَرْشِ فَلَا

سرا پردے ان تر دے مرشد پورې نو نه

يَبْقٰى مَلَكٌ فِي السَّمٰوٰتِ اِلَّا صَلّٰى عَلٰى

باقي کیږي هیڅ فرښته په آسمان کښې مګر درود وائي په

مُحَمَّدٍ وَّيَسْتَغْفِرُوْنَ لِذٰلِكَ الْعَبْدِ اَوِ

محمدؐ او بخښنه غواړي لپاره د دغه بندهٔ یا

الْاَمَةِ مَاشَآءَ اللّٰهُ وَقَالَ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

وینځې تر څو چه خوښوي الله پاک او فرمائیلي دي نبي صلی الله علیه وسلم

مَنْ عَسُرَتْ عَلَيْهِ حَاجَةٌ فَلْيُكْثِرْ بِالصَّلٰوةِ عَلٰى

خوک چه مشکل شی پر ځه حاجة نو هغه دِ ډیر درود لولی په ما

فَإِنَّهَا تَكْشِفُ الْهُمُوْمَ وَالْغُمُوْمَ وَالْكُرُوْبَ وَ

نو دا درود لرے کوی اندیښنے او غمونه او سختئے او

وَتُكْثِرُ الْأَرْزَاقَ وَتَقْضِى الْحَوَائِجَ وَعَنْ بَعْضِ

او ډیروی رزقونه او پوره کوی حاجتونه او نقل دے له بعضِ

الصَّالِحِيْنَ أَنَّهُ قَالَ لِيْ جَارٌ نَسَّاخٌ فَمَاتَ

نیکانو نه چه ده وئیلی دی ما ته ځما یو همساوتدی لیکونکی دکتابونو نو مړ شو

له قوله عسرت علیه: خوک چه د رسول الله صلی الله علیه وسلم قبر مبارک ته ځه ورشی او دا آیة چه ان الله و ملائكته يصلون على النبي تر اخره پورے ولولی، او اویا ځله دا درود ولولی صلى الله عليك يا محمد نو یو فرښته به آواز وکړی صلى الله عليك يا فلان یعنی الله دِ رحمت وکړی په تا اے فلانیه وګواړه ځه چه غواړے نو به وایس نه کړے شی حاجت ستا ۱۲ تفسیر روح البیان.

روایة دے له عبدالله بن عمر رضی الله عنه چه د چا ځه حاجت پیښ شی نو د شروع او د زیارت او د جمعے په ورځ دِ روژه ونیسی او بیا د جمعے د مانځه پس دِ ولولی دا دعا. اللهم انى اسألك باسمك بسم الله الرحمن الرحيم الذى لا اله الا هو عالم الغيب والشهادة هو الرحمن الرحيم واسالك باسمك بسم الله الرحمن الرحيم. الذى لا اله الا هو الحى القيوم لا تاخذه سنة ولا نوم الذى ملأت عظمته السموت والارض. واسالك باسمك بسم الله الرحمن الرحيم الذى لا اله الا هو عنت له الوجوه وخشعت له الابصار ووجلت القلوب من خشيته ان تصلى على محمد وعلى ال محمد ﷺ وان تعطينى مسئلتى وتقضى حاجتى برحمتك يا ارحم الراحمين. او دغه خپل حاجت نوم واخلی او دا یو ستر لطیف دے مجرب. او په بعضو روایتونو کښی دی چه اول وخت د جمعے نه دِ لا هیڅ او د الله په نامه دِ خیرات ورکړی لږ وی یا ډیر. بیا هر کله چه مونځ وکړی هغه دعا دِ ولولی نو په تحقیق قبول به شی دعا د هغه او وئیل به عبدالله رضی الله عنه چه دا دعا دِ نادانانو ته نه ښودلے کیږی ځکه چه کیدے شی چه د ناجائز امر سوال وکړی ۱۲ سر الاسرار

فَرَاَيْتُهٗ فِى الْمَنَامِ فَقُلْتُ لَهٗ مَا فَعَلَ اللّٰهُ بِكَ

بیا وُلیده ما هغه په خوب کښې    نو او وَئیل ما هغه ته څه وُکړل    الله پاک تا سره

فَقَالَ غَفَرَلِىْ فَقُلْتُ فَبِمَ ذٰلِكَ قَالَ اِذَا كَتَبْتُ

نو هغه او وئیل وے بخښلم    نو وئیل ما نو په څه ده دغه بخښانه    هغه او وئیل چه کوم وَخت به ما لیکه

اِسْمَ مُحَمَّدٍ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِىْ كِتَابٍ صَلَّيْتُ

نوم د محمد    صلے الله    علیه    وسلم    په څه کتاب کښې درود به لوستو ما

عَلَيْهِ فَاَعْطَانِىْ رَبِّىْ مَالَا عَيْنٌ رَاَتْ وَلَا اُذُنٌ

په هغه    نو را کړیلې ماته    رب م    هغه څیز چه نه سترګو لیدلی دی او نه غوږونو

سَمِعَتْ وَلَا خَطَرَ عَلٰى قَلْبِ بَشَرٍ وَعَنْ اَنَسٍ اَنَّهٗ

اورېدلی دی    او نه تیر شویدی په    زړه    د انسان    او روایت د حضرت انس نه دے وئیلی دی

لـه قوله فرأیته:- لیدونکے دے خوب عبیدالله بن عمر القواریری دے او په شان د دے قصه شویده لـه ابو عمر نه ده وئیلی دی نصبر را کړیدے ماته یو سړی صوفی چه زما یو دوست وفات شو خوب کښې م وُلیده نو تپوس م ترینه وُکړو چه الله در سره څه وُکړل. ده او وئیل الله زما معفوه کړم نوما وئته او وئیل په څه وجه هغه او وئیل چه ما به حدیث شریف لیکل نو هر کله چه نوم د رسول کریم ﷺ راغے نو ما به پرِ صلے الله علیه وسلم وُلیکلو په اُمید د ثواب نو په دے وجه الله زه او بخښلم. او روایت دے له سفیان بن عیینه رح چه ده وئیلی دی چه ماته څوک د صاحب خلقان وئیلی دی چه زما یو دوست به حدیث شریف لیکل بیا هغه وفات شو نو خوب کښې وُلیدو ما چه شنے جامے اغوستے وے او ناست دے ما وئته او وئیل چه ته زما هغه دوست نه یې؟ هغه او وئیل هو یم ما به دُنیا کښې حدیث وغیره چه به لیکل او د حضرت ﷺ مبارک به راغے نو ما به ورسره درود شریف لیکلو. نو دا جامے د هغے په بدل کښې راکړے شویدي- محمد بن سلیمان هم نقل کړی په خوب کښې په دے طور لیدلے دے او هم داسے سوال جواب ئے ورسره کړیدے. وئیلی دی ابو صالح عبدالله چه لیدلے شویدی خوب کښې بعض اصحاب حدیث هم په دے طور باندے. غفرنا ولهم اجمعین.

قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا

ده وئیلی دی چه فرمائیلی دی رسول الله صلے الله علیه وسلم نشی

يُؤْمِنُ اَحَدُكُمْ حَتّٰى اَكُوْنَ اَحَبَّ اِلَيْهِ مِنْ

مؤمن کیدے یو له تاسو نه تر دے چه شم زه بنه محبوب هغه ته له

نَفْسِهٖ وَمَالِهٖ وَوَلَدِهٖ وَوَالِدِهٖ وَالنَّاسِ اَجْمَعِيْنَ

نفس دهغه نه او د مال دهغه نه او د اولاد دهغه او د پلار دهغه نه او له خلقو ټولو نه.

وَفِيْ حَدِيْثِ عُمَرَ رضی اللّٰہ عنہ اَنْتَ اَحَبُّ اِلَيَّ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ

او دی په حدیث د حضرت عمر رضی الله عنه کښے چه ته زیات محبوب ئے ماته یا رسول الله دخلائے تعالیٰ

مِنْ كُلِّ شَيْءٍ اِلَّا نَفْسِيَ الَّتِيْ بَيْنَ جَنْبَيَّ فَقَالَ

له هر څیز نه مګر له نفس ځما نه هغه چه دے په مینځ د اړخونو ځما کښے نو وفرمائیل

له قوله لا یؤمن :- یعنی مؤمن حقیقی نشی کیدے مقدم کړلو نفس ځکه چه هغه په هرڅیز مقدم دے او دده روستو ذکر د مال شوے فرمائیلو ځکه چه د مال مینه خو هرچاته معلومه ده او په بعضو نسخو کښے د والد په ځائے والدیه دے په صیغے تثنیه سره ۱۲ فاسیؒ. ۲ه قوله من نفسه :- روایت دے له انس نه ده وئیلی دی فرمائیلی دی رسول کریم چه چا کښے وی دا دریے خبرے نو هغه به بیا مومی خوند د ایمان اول دا چه محبت نه ساتی مګر خاص دالله تعالیٰ له پاره دویم دا چه الله او رسول هغه ته زیات محبوب وی له هرچانه. دریم دا چه خوښه نه وی هغه ته دوزخ کښے پریوتل پس له دے نه چه الله تعالیٰ ترینه خلاص کړے وی. یعنی مکروه ګنړی کفر پس له مسلمانیدو نه ۱۲ صحیح مسلم. له دے حدیث نه ثابت شو وجوب د محبت د رسول الله صلے الله علیه وسلم زیات له نفس نه او له مال نه او له والدینو او د ټولو خلقو نه او مراد له دے محبت اختیاری دے نه محبت طبعی ځکه چه محبت دا نسان د خپل نفس سره طبعی دے او تشته ئے لاره زره ته دده ۱۲ شرح مسلم. ۳ه قوله الا نفسی التی :- په بعضو نسخو کښے پس له اِلّا نه لفظ من ښته دے لیکن په نسخه سهیلیه کښے هم دا رنګ دے په اسقاط د من سره ۱۲.

لَهٗ عَلَيْهِ الصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ لَا تَكُوْنُ مُؤْمِنًا حَتّٰى

دغه نبي عليه الصلوٰة والسلام نشئ كيدے ته مؤمن تر دے

اَكُوْنَ اَحَبَّ اِلَيْكَ مِنْ نَفْسِكَ فَقَالَ عُمَرُ رض وَالَّذِىْ

چه شم زه زيات محبوب تاته له نفس ستا نه نو اوويل عمر رض قسم په هغه ذات

اَنْزَلَ عَلَيْكَ الْكِتَابَ لَاَنْتَ اَحَبُّ اِلَىَّ مِنْ نَفْسِىَ

چه نازل كړيدے په تا قرآن مجيد خامخا ته زيات محبوب ئے ماته له نفس خپله

الَّتِىْ بَيْنَ جَنْبَىَّ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

هغه چه دے په مينځ دواړو اړخونو زما كښې نو وفرمائيل رسول الله صلے الله عليه

وَسَلَّمَ اَلْاٰنَ يَا عُمَرُ تَمَّ اِيْمَانُكَ وَقِيْلَ لِرَسُوْلِ اللّٰهِ

وسلم اوس يا عمر! پوره شو ايمان ستا او وويلے شو رسول الله

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَتٰى اَكُوْنُ مُسْلِمًا وَفِىْ لَفْظٍ

صلے الله عليه وسلم ته كله به كيږم مسلمان او دى په بل لفظ كښے

اٰخَرَ مُؤْمِنًا صَادِقًا قَالَ اِذَا اَحْبَبْتَ اللّٰهَ فَقِيْلَ

كله به كيږم مؤمن ريښتينے وفرمائيل كوم وخت چه مينه لرے ته الله سره نو بيا او وئيل

له قوله لاتكون مؤمنا. يعنى زيات كامل مؤمن نه شے كيدے مگر په دغه طريقه مذكوره كښ عمر رض له دے نه مخكښ مؤمن كامل وو لا نه. عمر رض د خپل حال شكايت كړے وو رسول الله ته نو چه رسول كريم ورته وفرمائيل لاتكون مؤمنا او. نو فوراً عمر رض ته د المحبة كامل حاصل شو او ويے وئيل چه لانت احب الى من نفسى التى بين جنبى نو حضرت گواهى وكړه په كمال د ايمان د عمر رض او ويے فرمائيل الآن يا عمر تم ايمانك ۱۲ ۲ه قوله صادقا: علامه د صدق د ايمان دا ده چه سره مشغول وى په هغه څيزونو او عمل چه ثابت وى له قرآن يا حديث نه او په هغه څيز چه معلوم شوے وى په قياس او په اجماع د اهل علم متقين ۱۲ منه ۳ه قوله قال: په بعضو نسخو كښے لفظ د قال نشته

# مَتٰى اُحِبُّ اللهَ قَالَ اِذَآ اَحْبَبْتَ رَسُوْلَهٗ فَقِيْلَ

کله به مینه لرم الله سره وے فرمائیل چه محبة لرے ته د رسول ۲ د هغه سره نوجا ارو ئیل

# وَمَتٰى اُحِبُّ رَسُوْلَهٗ قَالَ اِذَآ اتَّبَعْتَ طَرِيْقَتَهٗ وَ

او کله به مینه لرم . د رسول د هغه سره وے فرمائیل چه کوم وخت پیروی کوے ته د طریقے د هغه ۱

# اسْتَعْمَلْتَ سُنَّتَهٗ[۲] وَاَحْبَبْتَ بِحُبِّهٖ وَاَبْغَضْتَ بِبُغْضِهٖ

ته عمل کوے په سُنة د هغه او مینه لرے ته په مینه د هغه او کینه لرے ته په کینه د دهٔ سره

له قوله محبته : محبت په دوه قسمه دے یو اختیاری دے بل طبعی دے . طبعی هغه دے چه په مقتضے د طبیعت سره بے اختیاره صادریږی او دا له بحث نه خارج دے ځکه چه کلام زمونږه په ایمان کښی دے چه تکلیف شرعی د هغه په حاصلولو کښی دے . نو مراد له محبت نه محبة اختیاری دے چه په هغه کښی تکلیف جاری وی او محبة د خپل نفس سره د هر یو طبعی او فطری وی خو له دینه مخ کیدے نه شی مگر هغه خلق چه په مجاهده سره په خپل نفس غالب شوی وی نو دوی به نزد محبة د الله او د رسول ۲ غالب وی په محبة د جان و مال دد وی ۱۲ مزرع الحسنات .

له قوله سُنته ، محبة د رسول الله صلی الله علیه وسلم ظاهریږی په اتباع د سنة دهٔ او په تللو په طریقه دهٔ ۲ او د رسول الله ۲ د محبة نور ے علامے هُم شته یو دا چه محبة نه ساتی مگر هغه جاسره چه رسول الله ۲ ورسره محبة لرلے وی او بُغض لری هغه جاسره چه رسول الله ۲ ورسره بُغض ساتلے وی نو یکاردی چه خپل خواهش د رسول الله ۲ د خواهش تابع کړے او د هغه شی چه رسول کریم ۲ به هم محبوب او پس له ذکر د خدائے پاک ذکر د رسول الله صلی الله علیه وسلم دے د ده په اخلاص سره او بل په کثرت سره درود لوستل دی په حضرت ۲ او بل زیات محبوب لرل دی دیدار د رسول الله صلی الله علیه وسلم په کل مملوکات خپلو بلکه له سره زره نه اگرکه دا دُنیا وزه د کے کړے شی . او بل متخلق کیدل دی په اخلاق د رسول کریم ۲ . او متادب کیدل دی په آدابو د رسول کریم ۲ سره . او په شمائل د هغه سره لکه جود ایثار علم صبر زهد اعراض له ابناء الدنیا نه او له غفلت نه او نه لهو لعب نه او محبة د فقراء او مساکین سره او ناست پاست د هغوی سره او بل اعتقاد د بزرگی د حضرت ۲ په ماسوی الله باندے . او خوند حاصلول په ذکر د حضرت صلی الله علیه وسلم سره او خوشحالیدل په نوم پاک د رسول اکرم صلی الله علیه وسلم ۲

مطالع المسرات :

۳ اللهم وفقنا واولادنا وجمیع المسلمین لاتباع اکمل لسنة رسول الله

وَوَالَيْتَ بِوَلَايَتِهٖ وَعَادَيْتَ بِعَدَاوَتِهٖ وَيَتَفَاوَتُ

او دوستي کوے ته په دوستئ دده سره او دشمني کوے ته په دشمنئ دهغه سره او متفاوت کیږي

النَّاسُ فِي الْإِيْمَانِ عَلٰى قَدْرِ تَفَاوُتِهِمْ فِيْ مَحَبَّتِيْ

خلق په ایمان کښ په قدر د تفاوت ددوئ په محبت زما کښ

وَيَتَفَاوَتُوْنَ فِي الْكُفْرِ عَلٰى قَدْرِ تَفَاوُتِهِمْ فِيْ

او متفاوت کیږي دوئ په کفر کښ په اندازے د فرق ددوئ په

بُغْضِيْ أَلَا لَا إِيْمَانَ لِمَنْ لَا مَحَبَّةَ لَهٗ أَلَا لَا إِيْمَانَ

بغض زما کښے خبردار نیشته ایمان دهغه چاچه نه وي محبت دهغه خبردار نیشته ایمان

لِمَنْ لَا مَحَبَّةَ لَهٗ أَلَا لَا إِيْمَانَ لِمَنْ لَا مَحَبَّةَ لَهٗ

دهغه چاچه نه وي محبت دهغه خبردار نیشته ایمان دهغه چاچه نیشته محبت دهغه

وَقِيْلَ لِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَرٰى مُؤْمِنًا

او چا وئیلی دَ رسول الله صلے الله علیه وسلم ته مونږ وینو بعض مؤمن

يَخْشَعُ وَمُؤْمِنًا لَا يَخْشَعُ مَا السَّبَبُ فِيْ ذٰلِكَ فَقَالَ

چه عاجزي کوي او بعض مؤمن چه نه کوي عاجزي څه سبب دے په دیکښ نو حضرتؐ وفرمائیل

مَنْ وَجَدَ لِإِيْمَانِهٖ حَلَاوَةً خَشَعَ[1] وَمَنْ لَمْ يَجِدْهَا

خوک چه بیامومي د ایمان خپل خوند نو هغه عاجزي کوي او خوک چه بیا نه مومي دغه خوند

[1] قوله خَشَعَ اهم دغه خضوع خشوع ده یا قریب ده خضوع ته . مگر خضوع اکثر مستعملیږي په ظاهري عاجزئ د بدن او د گردن کښ خصوصًا او خشوع عجز کول دي په زړه سره او ځان خوار او ذلیل او خائف گرځول دي (اشعة) په دے شان چه ظاهري اثر دهغه په سکون او ذلت د جوارح ظاهر یږي سره لکه روا وانه کول او نه ملتے ته کتل او د هر چا سره لب ولهجه نرمه ساتل -

لَمْ يَخْشَعْ فَقِيلَ بِـمَ تُوجَدُ أَوْ بِـمَ تُنَالُ وَ

نه کوي عاجزي نو وويل شو چې په څه به پیا مونده شي یا په څه به رسیده شي او

تُكْسَبُ قَالَ بِصِدْقِ الْحُبِّ فِي اللهِ فَقِيلَ وَبِـمَ

حاصلیدے شي وے فرمائیل په رښتینې مینه سره د الله پاک نو وویل شو چې په څه به

يُوجَدُ حُبُّ اللهِ أَوْ بِمَ يُكْتَسَبُ فَقَالَ بِحُبِّ

مونده شي مینه د الله پاک او په څه به حاصلولے شي نو وے فرمائیل په محبت د

رَسُولِهِ فَالْتَمِسُوا رِضَاءَ اللهِ وَرِضَاءَ رَسُولِهِ

رسول د هغهٔ نو لټوئ رضا د الله پاک او رضا د رسول د هغهٔ

فِي حُبِّهِمَا وَقِيلَ لِرَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

په محبت د دے دواړو کښې او وویلې شو رسول الله صلى الله علیه وسلم ته

(بقیه د تشریح) اوبغان له هرځایه لاندې کنرل د انتیجه د خوند د ایمان ده او میوه ده د وُنے دیقین. شعر.

بز خشوع وبندگی واضطرار ✦ اندرین حضرت ندارد اعتبار. اللهم اجعلنی خاشعًا متصدعًا من خشیة الله. مظاهر

(دیے نه حاشیه) له قوله بحب رسوله: یعنی محبت لری په محبت د الله یعنی په دے وجه چه تاسو الله سره محبت لری یادا مطلب چه په دے وجه چه الله تعالے ما سره محبت لری یعنی زه محبوب الٰهی یم او د محبوب محبوب چه وی هغه محبوب وی. او محبت لری د اهل بیت ما سره په وجه د محبت ما یعنی په دے وجه چه ستاسو ما سره دوستی ده یادا مطلب چه محبت لرئ د اهل بیتو ځکه چه زه هغوی سره محبت لرم. غرض دا چه کچرے تاسو د الله سره محبت لرئ نو زما سره به محبت لرئ. او د هغه محبت دا صورة دے چه تاسو به زما پیروی کوئ لکه چه فرمائیلی دی الله تعالى: قل ان کنتم تحبون الله فاتبعونی یحببکم الله. راقم الحروف وائی چه د حضرت محبت دا چه د هغه د فرمان مطابق عقیده او عمل وکړے شی فقط نام الابرار.

له قوله فی حبهما. جمع د محبت د الله تعالے او محبت د رسول د هغهٔ په یو ضمیر کښې او دا جمع خاص په حضرت محمد صلی الله علیه وسلم پورے. او نه ده روا بغیر د حضرت صلی الله علیه وسلم نه. منه.

مَنْ آلُ مُحَمَّدٍ الَّذِيْنَ أُمِرْنَا بِحُبِّهِمْ وَإِكْرَامِهِمْ وَ

چه څوک وي آل د محمد هغه چه حکم شوی مونږ ته په محبت د هغوی او د عزت د هغوی او

الْبُرُوْرِ بِهِمْ فَقَالَ أَهْلُ الصَّفَاءِ وَالْوَفَاءِ مَنْ آمَنَ

د نیکئ کولو سره د هغوی نو وه فرمائیل چه هغوی خلق د زړه صاف او د وفا دي چا چه ایمان را وړی

بِيْ وَأَخْلَصَ فَقِيْلَ وَمَا عَلَامَاتُهُمْ فَقَالَ إِيْثَارُ مَحَبَّتِيْ

وي په ما او زړه اخلاص کړے وي نو تپوس وکړے شو حضرت ته چه څه دي نښے د هغو نو وے فرمائیل غوره کول د محبت زما دي

عَلٰى كُلِّ مَحْبُوْبٍ وَاشْتِغَالُ الْبَاطِنِ بِذِكْرِيْ بَعْدَ

په محبت د هر محبوب او مشغول لرل د باطن دي په ذکر زما پس

له قوله آل محمد: په تفسیر کشاف او تفسیر کبیر کښې ذکر دي چه خبردار شئ کوم سړے چه مړشي په محبة د آل محمد نو مړشو هغه مؤمن کوم سړے چه مړشي په محبة د آل محمد نو مړشو مستکمل الایمان کوم سړے چه مړشي په محبة د آل محمد نو مړشو شهید څوک چه مړشي په محبة د آل محمد نو د اهل بهشت جنة ته څوک چه مړشي په محبة د آل محمد نو مړشو په طریقه د اهل سنة والجماعة څوک چه مړشي په محبة د آل محمد نو مړشو ولې لوئی چه قبر د ده به زیارتګاه د ملائکو وي. او څوک چه مړشي په بغض د آل محمد نو راشي به په ورځ د قیامة او لیکلي شوي به وي په د واړو سترګو د ده چه دا سړے نا امید دے له رحمة الله نه او څوک چه مړشو په بغض د آل محمد نو کافر مړشو معاذ الله. څوک چه مړشي په بغض د آل محمد نو بوئي به نه کړي جنة هیڅکله ۱۲ ناصر الابرار. ۲له قوله بذکري: یعني له علاوه د محبة د حضرت نه ډیر یادول د حضرت دي. لکه چه حضرت پخپله فرمائیلي دي من احب شیئا اکثر ذکره او حقیقة دا دے چه څوک حضرت شب و روز یادوي نو حضرت به ضرور ننه یاد وي لکه چه هغه خو متخلق دے په اخلاق الهیه سره او الله فرمائیلي دي اذکروني اذکرکم او درود شریف چه یوه ښه نزدے وسیله حضرت ته جزو د ده محبة دے. او بعضاله علاوه د محبة ظاهر ول د توقیر او د تعظیم او د خشوع او د خضوع دي په نزد د ذکر د حضرت لکه صحابه چه د حضرت نه پس هغه ذکر کولو نو به هیبت نه به یې رنګونه زیړ کیده. نو مطلب دے چه د حضرت ذکر کیږي نو سړے د حرکة نه سکون ته شي لکه چه په حضور د رسول صلی الله علیه وسلم کښې ولاړ وي ۱۲ مدارج النبوة.

ذِكْرِ اللّٰهِ وَفِي أُخْرٰى عَلَا مَا تُهُمْ إِدْمَانُ ذِكْرِي

ذکر د الله ته او دی په بل روایت کښی نښے د دغه همیشه ذکر زما دے

وَالْإِكْثَارُ مِنَ الصَّلٰوةِ عَلَيَّ وَقِيلَ لِرَسُولِ اللّٰهِ

او ډیر لوستل د درود دی په ما باندے او وویلی شو رسول الله

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنِ الْقَوِيُّ فِي الْإِيمَانِ بِكَ

صلی الله علیه وسلم ته څوک محکم دے په ایمان کښی په تا

فَقَالَ مَنْ اٰمَنَ بِي وَلَمْ يَرَنِي فَإِنَّهُ مُؤْمِنٌ بِي

نو دے فرمائیل هغه څوک چه ایمان یے راوړے وی په ما او نه یم لیدلے یے په تحقیق سره دغه سړے واقعی مؤمن

عَلٰى شَوْقٍ مِنِّي وَصِدْقٍ فِي مَحَبَّتِي وَعَلَامَةٌ

دے په ما په مینے سره زما او دے رښتونے دے په محبت زما کښی او د نښه د پیژندګلو

له قوله من آمن بی روایت کړیدے احمدؒ او دارمی له ابو عبیدہؓ نه چه وویلی وی (صحابه کښی) چه یا رسول الله صلی الله علیه وسلم نه بو نه څوک غوره شته مونږ نه چه ایمان راوړیدے او تا سره غزا کړی ده نو حضرتؐ وفرمائیل یو قوم به پیدا کیږی پس له تاسو نه چه هغوی به په ما ایمان راوړی بے د لیدو زما د. د دے حدیث سند حسن دے. او بل روایت کښی راغلی دی چه صحابوؓ وویلی چه نه مونږ نه څوک غوره دی د رسول کریمؐ وفرمائیل هو شته یو خلق به راشی روستو له تاسو نه موندی به کلام د الله (قرآن مجید) نو ایمان به پرے راوړی او عمل به پرے کوی او بے له لیدو زما نه به ما به یقین کوی نو دغه خلق غوره دی له تاسو نه نو له دے حدیث نه ثابته شوه چه په یقین کولو کښی په حضرتؐ بے له لیدو د دغه روستو خلق له صحابهؓ نه غوره دی او په نور وصفاتو کښی صحابه له کل آمت نه غوره دی ۱۲ ـه سوال شوے وکړ له ابو علیؒ نه چه څه فرق دے په مینځ د شوق او اشتیاق کښی نو هغه جواب ورکړو چه شوق په ملاقات سره ورکیږی او اشتیاق په ملاقات سره نه ختمیږی د وجه دا سے چندے ته. بلکه د بعضو له دے نه زیاتیږی ۱۲ خلاصه. قوله وشوقهم شوق نتیجه او ثمره د محبت ده. نو مستحکم او مستظهر کیږی محبت په شوق سره او شوق بے له شوق محبت ده په ویرے د جدائی یے نزد د وصال د محبوب سره و شوق غوره وصال او دیدار او اشتیاق په دے سره نه ختمیږی نو اشتیاق ۱۲

ذٰلِكَ مِنْهُ اَنَّهٗ يَوَدُّ رُؤْيَتِيْ بِجَمِيْعِ مَا يَمْلِكُ وَفِيْ

دد غه شوق ذده واده چه دے خوښوی لیدل زما په مقابله د تول هغه څیز ونو کښې چه دی ده لره

اُخْرٰى مِلْأَ الْاَرْضِ ذَهَبًا ذٰلِكَ الْمُؤْمِنُ بِيْ حَقًّا

کلیږی او دی په بل روایة کښې په عوض د دلیدو د زما که له سرو زرو نه دغه سړے ایمان لرونکے دے بما په رښتیا

وَالْمُخْلِصُ فِيْ مَحَبَّتِيْ صِدْقًا وَقِيْلَ لِرَسُوْلِ اللّٰهِ

واخلاص لرونکے دے په محبت زما کښې په رښتیا او وویلی شو رسول الله

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَرَاَيْتَ صَلٰوةَ الْمُصَلِّيْنَ

صلی الله علیه وسلم ته چه خبر راکړه ته له درود نه د درود ویونکو

عَلَيْكَ مِمَّنْ غَابَ عَنْكَ وَمَنْ يَّاْتِيْ بَعْدَكَ مَا

په تا هغه درود ویونکی چه غائب دی له تا نه او هغه درود ویونکی چه راځی پس له تا نه څه به وی

حَالُهُمَا عِنْدَكَ فَقَالَ اَسْمَعُ صَلٰوةَ اَهْلِ مَحَبَّتِيْ

حال د دغه دواړو تا څخه نو وے فرمایل چه اورم درود د خلقو د محبت خیل

وَاَعْرِفُهُمْ وَتُعْرَضُ عَلَيَّ صَلٰوةُ غَيْرِهِمْ

او پیژنم هغوئ او پیش کید ے شی ماته درود دغیر دوی

عَرْضًا

په ذریعه د فرښتو



ﻠﻪ قوله رؤیتی، رؤیة ویلے شی د ولیدے لیدو ته او رؤیا ویلے شی د خوب لیدو ته او کله کله استعمال دیو په ځائے د بل هم کیږی ۱۲ خیر جاری شرح صحیح بخاری






الصلوٰۃ والسلام
علیک یا رسول اللہ




شاخ ڈاک اسمٰعیل خیل

